بسم الله الرحمن الرحیم

# سریزه

لکه څنګه چې د پښتنو د هري سیمي، قبیلې او حتی د هري درې د اوسېدونکو ژبه له نورو توپیر لري، همدا راز پښتو واحد او ټولو پښتنو ته منلی لیکدود هم نه لري، مروج لیکدودونه ئې ډېري ستونزي لري، له ګاونډیو ژبو سره ئې نه د واحد لیکدود له پلوه مقایسه کولی شو او نه د واحد ویندود له پلوه، عربي، فارسي او اردو په بېلو بېلو هېوادو کي هم ګډ او ټولو ته منلی لیکدود لري خو پښتو له دې پلوه ډېره وروسته پاتې ده، ډېر کار ته ضرورت دئ چې پښتو لیکدود او ویندود ملي او ټولو پښتنو ته مقبوله بڼه غوره کړي، د اوسني پر پشانه حالت دلایل ئې روښانه دي چې دلته ئې د څېړلو ځای نه دئ، یوازي دومره باید ووایو چې ژبه هغه مهال له داسي تفرق او د نورو ژبو له اغېزه ژغورل کېږي، قومي بڼه ئې په ملي بڼي بدلېږي،

ویونکي ئې په یوه لیکدود او ویندود متحد کېږي چي ځواکمن او ملي حکومت ئې ترشا وي، د هېواد تعلیمي او درسي نصاب ترې جوړ او د خبري رسنیو او رسمي اداراتو ژبه شي، پښتو تر ننه دا سعادت نه دئ ترلاسه کړی، پښتانه له یوې خوا تل د بهرنیو د عسکري تېریو مقابلې ته اړ شوي او له بلي خوا تر فرهنګي یرغلونو لاندي پاته شوي، خوا ته ئې د پاکستان او ایران په څېر دوه ځواکمن حکومتونه وو چي یوه ئې اردو او بل ئې فارسي ته کار کړی او پر نورو ئې خپله ژبه مسلطه کړې. همدا وجه ده چي په پښتونخوا کي د پښتنو زامن په ځانګړې توګه هغه چي په پاکستاني سکولونو کي سبق وایي پښتو ئې نیمایي له اردو او انګریزي جوړه وي، د هرات ډېری پښتنو قومونو خپله اصلي ژبه په بشپړه توګه هېره کړی، هرات د غلزیو ټاټوبی وو، په سلو کي تر اویا زیات مېشت قومونه ئې پښتانه ول او په پښتو ئې خبري کولې، خو اوس چي له چا پوښتنه وکړې: د کوم قوم یې؟ وایي به چي پښتون، اسحاق زی یم، خو په پښتو به خبري نشي کولی، د کندهار له پښتنو به واورې چي وایي: د سیب درختي سایې ته ناست وم!! وجه ئې دا ده چي پر هرات او کندهار څه موده ایرانیانو حکومت کړی. هر قوم چي پر یوې ټولني له سیاسي، فکري، اخلاقي او اقتصادي پلوه مسلط شي؛ ژبه ئې هم د نورو قومونو پر ژبي سیوری وغوړوي، انګریزانو امریکا اشغال کړه، پربکړه ئې وکړه چي

لیک لوست به په انګرېزي وي، دا دئ درې پېړۍ وروسته د امریکا د ټولو اصلي قومونو ژبې په پشپړه توګه له منځه تللې، د وروستۍ ژبې وروستی ویونکی ئې سږکال (۲۰۰۸) ومړ او په دې توګه د اصلي امریکایانو ټولې ژبې له منځه ولاړې.

متأسفانه اوس نه یوازې په کلیواله کچه د پښتنو لهجې بېلې بېلې دي بلکې په لوستو پښتنو کې هم یووالی نه مومو، نه د وینا او لهجې یووالی او نه د لیکدود یووالی، د مشرقي ساحې لیکدود د جنوبي او جنوب غربي ساحو له لیکدوده توپیرونه لري، دا اختلاف باید ختم شي، د پښتو لیکدود باید معیاري او توحید شي، چارواکي، مشران او لیکوالان باید دې ستونزې ته توجه وکړي، د ملي یووالي لپاره ضروري او اړینه ده چې ملي ژبه ولرو، خو دې ته په پام سره چې د ژبې د یووالي او معیاري کولو هڅه د قومي او ژبني تعصباتو راپارولو باعث نشي، موخه مو یووالی او د اختلافاتو ختمول وي نه یو قوم او ژبه ئې پر نورو تحمیلول، ځیني کړۍ د سیاسي موخو لپاره د ژبې په اړه داسې څه وایي چې ژبني تعصبات راپاروي، یوه پر بلې غوره او لرغونې ګڼې، په داسې حال کې چې د ټولو انساني ژبو بنسټ یو دئ، هیڅ ژبه پر بلې تفوق نه لري، لکه څنګه چې د انسانانو نسل او توکم یو دئ او له یوې جوړې مور او پلاره پیدا شوي، همداسې ئې ژبه هم په سر کې یوه وه او د خاصو عواملو په وجه سره بېلې شوې.

زه په دې موخه چې پښتو ليکدود او ويندود له اوسني پرېشانه حالته ووځي ټولو هغو پښتنو ليکوالو ته ځو وړانديزونه لرم چې د يووالي او وحدت هڅه کوي او غواړي چې د پښتو ليکدود معياري، متفق عليه او ټولو ته د منلو وړ شي. که څه هم دا کار تر هغه نتيجه نه ورکوي چې پښتو په واقعي معنی ملي او رسمي ژبه شي، په راډيو، ټلويزيون، چاپي خپرونو، تعليمي مؤسساتو او رسمي اداراتو کي د ملي ژبي په توګه وکارول شي، تر اوسه متأسفانه په افغانستان کي پښتنو دا حق هم نه دئ ترلاسه کړی چي زامن ئې په مکتبونو او پوهنتون کي په خپلي مورنۍ ژبي ليک لوست وکړي، خو دا تشه بايد ډکه شي او پښتو له اوسني پرېشانه حالته بايد وايستل شي.

زه په دې اړه څه وړانديزونه لرم چي د دې مختصري رسالې په ترڅ کي ئې د بااحساسه او دردمندو ليکوالو مخي ته ږدم، اميد دئ په دې سره ځيني هغه ستونزي حل شي چي پښتو ليکدود همدا اوس ورسره مخامخ دئ.

حکمتيار

# د پښتو حروف

د پښتو او فارسي حروف له عربي اخيستل شوي، فارسي څلور حروف (پ، چ، ژ او گ) پرې علاوه کړي او (ة) ئې ترې ايستلې، او په پښتو کي په دې څلورو برسېره نور هم پرې اضافه شوي چي ټول ئې دا دي: (ټ، پ، چ، ځ،څ، ډ، ړ، ژ، ږ، ښ، گ، ګ، ڼ، ې، ۍ)

تاسو ته معلومه ده چي عربي حروف له دغو علايمو(َ ،ِ ،ُ ،ً ،ٌ ،ٍ ، ~، ْ، ٰ) پرته ناقص دي، په عربي کي دا علايم د حروفو ډېره ضروري برخه ده، موږ د دغو علايمو د نه رااخيستلو په وجه ناقص حروف کاروو، موږ نه يوازي (زور، زېر، پېش :َ ،ِ ،ُ، ته ضرورت لرو بلکي تنوين ً ته هم ضرورت لرو ځکه د عادتاً، حتماً او قطعاً په څېر هغه الفاظ چي موږ له عربي رااخيستي له دغه علامې پرته ناقص دي،

همداراز موږ له دغو علايمو علاوه د زېرکي او زورکي په ځېر علايمو ته هم اړ یو، د نه کارولو په وجه ئې له ګڼ شمېر ستونزو سره مخامخ یو، د مثال په توګه (لور، سور، سر) د تورو د حرکت له مخي ځو بېلي بېلي معناوي لري، لکه: (لور: نجلۍ)، (لور: د رېبلو وسیله)، (لور: طرف) او (لور: پېرزوینه)، (سور: سور رنګ)، (سور: سپور)، (سور: عرض)، (سور: ځښل)، (سر: کوپړۍ)، (سر: راز)، که لوستونکی دا الفاظ له جملې بهر وګوري نه پوهېږي چي کومه معنی ترې مراد ده. همداراز دغي نقیصې موږ دې ته اړ کړي یو چي پنځه يې ګاني وکاروو، حال دا چي په حقیقت کي زموږ (ی) یوه ده، بېل بېل غږونه ئې د هغه حرف په حرکت پوري تړاو لري چي تر (ی) مخکي راځي، که مخکنی حرف زور ولري نو (ی) نرمه تلفظ کېږي او موږ ئې په ملینه او نرمي (ی) یا د ځینو په وینا زورکی واله (ی) سره لیکو، لکه: شَی، لرګی، سړَی، منګی... چا چي دې ته د زور واله (ی) نوم ورکړی دې ته نه دئ متوجه شوی چي دا زور د (ی) نه بلکي د هغه توري دئ چي تر (ی) مخکي راځي. دې ته د زورواله (ی) نوم ورکول غلطه نومونه ده.

او که دا مخکنی حرف ساکن واو یا الف وي نو بیا هم همدا نرمه ی کاروو لکه: دوْی، زوْی، ځاْی، بوْی، لوْی،

که زیر ولري نو څرګنده (ي) لیکو، لکه: سړِي، غوړِي، منګِي...

که مخکنی حرف زورکی ولري نو اوږده (ې) لیکو، لکه: شپې، خوږې، لندې، دې، شې، سړې...

او که تر يې مخکي حرف زېرکی ولري نو د ښځینه نومونو لپاره لکۍواله (ۍ) لیکو، لکه: کړکۍ، لونګۍ، مړۍ، او د نورو لپاره همزه واله (ئ) لیکو، لکه: راځئ، وخورئ، ورشئ، وکړئ... دلته تر (ی) مخکي توری، زورکی نه بلکي زیرکی لري.

که موږ دا علایم درلودی او هغه مو کارولی نو د یاګانو د کارولو په سر به له لانجو سره مخامخ نه وو، د مثال په توګه: د ښځینه نومونو په جمعي که به مو دا ستونزه نه درلوده چي ځیني د (ښځه) جمع (ښځې) او ځیني ئې (ښځي) ګڼي، خو نه دا د خپلي ادعاء لپاره څه دلیل وړاندي کوي او نه هغه، ټول هغه کلمات چي تر يې مخکي توری ئې زیر ولري باید په څرګندي (ي) سره ولیکل شي، لکه: چي، کي، مي، ځي، خوري، ښځي، لنډي، کونډي، منډي، سړي، کوي. او ټول هغه کلمات چي تر يې مخکي حرف ئې زورکی ولري باید په اوږده (ې) ولیکل شي، لکه: څپې، منې، لندې، خوږې، ترخې، سړې، تودې، ته راځې، خورې، ته ښه سړی يې،... ، دغه مطلب ته د نه پام کولو په سبب ځیني خلک د اوږده (ې) په کارولو کي ستونزه لري، چي، کي، مي، .... د چې، کې، مې... په څېر لیکي، په داسي حال کي چي د پښتنو ټول قبایل په دغو کلماتو کي له یا نه مخکي توری په

زیر سره تلفظ کوي، او اصولاً په کار ده چي په (ي) ولیکل شي.

انګریزي هم د علایمو د نشتوالي په وجه د (ی، و) په اړه ستونزي لري، د همدې لپاره ئې ګڼ شمېر (ی) او (و) ته ورته غږ لرونکي حروف جوړ کړي، لکه (A,E,I,Y) او (O,U,W,V) څوک چي د لومړي ځل لپاره د انګرېزي لیک زده کوي د دغو حروفو د لیکلو د ځای په اړه همداسي ستونزه لري لکه د پښتو په لیکلو کي چي ورسره مخامخ کېږي.

فارسي هم دا ستونزه لري، د علایمو د نه انتقال په سبب د (ی) او (و) د کارولو په ارتباط مشکلات لري، د مثال په توګه (سیر) څلور معناوي لري، سیر: موړ، سیر: اوږه، سیر: سفر، سیر: من، - شیر او شیر دوه معناوي لري شیر: شیدې او شیر: زمری، دا د یوې ژبي د لیکدود ستر عیب دئ چي د ګڼ شمېر مختلفو معناوو درلودونکو کلماتو لپاره ورته توري وکارول شي، دا لوستونکي له التباس سره مخامخوي، که په فارسي کي دا علایم کارول کېدی نو دا به ئې داسي لیکل: سُیر، سِیر، سَیر، سُیر او شِیر، شُیر

په دغو څلورو ژبو کي د انګریزي لیکدود تر ټولو ناقص او ستونزمن دئ، نه یوازي له دې پلوه چي د یوه غږ لپاره ګڼ شمیر توري لري بلکي له دې ناحیې هم چي ډېر ځله په کلماتو کي داسي توري کارول کېږي چي نه تلفظ کېږي، لکه په RIGHT کي GH، د

RIGHT دقيق تلفظ د RITE په توګه دئ، همداراز د ډېرو غږونو لپاره ځانګړي توري نه لري، لکه، خ، ع، غ، ژ، ش، چ؛ دې ته ئې مرکب توري جوړ کړي: KH, GH, JK فارسي هم دا ستونزه لري، د ټ، ډ، ړ لپاره توري نه لري، د پښتو او انګريزي کلماتو په تلفظ کي له ستونزو سره مخامخ کېږي. انګريزي له دې پلوه هم يوه ستونزمنه ژبه ده چي له مصدر نه اشتقاق ئې ډيري بې قاعده ګۍ لري، د مثال په توګه: له make نه made, made، له go نه went, gone، له do نه did, done او دې ته ورته بې شمېره نور نواقص.

په پښتو کي تر ضرورت زيات الفاظ جوړ شوي، د س، ص، ث، تر څنګ ئې څ او د ز، ذ، ظ او ض تر څنګ ئې ځ هم رااېستلي، ځيني ګ او ځيني ګ کاروي، همداراز په پښتو ليکدود کي ی او ئ د ورته غږونو لپاره کارول کېږي، د دغو حروفو زياتول مخصوصاً د (ګ، ځ، ی) نه يوازي غير ضروري کار وو بلکي پښتو ليکدود ئې ستونزمن کړی.

## د يې ګانو ستونزه

دا ستونزه حل کړو چي د پښتو (يې) يوه ده که پنځه؟ چي د اوږده يا مجهوله (ې)، لنډه يا څرګنده (ي)، زورواله يا نرمه (ی)، او زورکی واله او لکۍ واله (ۍ، ئ) يا لکۍ واله او همزه واله (يې) په

نامه یادېږي.

که یوه وي ولې ئې په پنځه ډوله لیکو؟ که پنځه وي؛ هره یوه ئې چېري او څنګه راځي؟ د کومي قاعدې مطابق که نه هسي د تعامل او دود له مخي؟ او داسي چي د هري (ی) اړوند کلمات باید حفظ کړو، چي دا یقیناً ګران کار دئ، په ځانګړې توګه هغو خلکو ته چي نوې پښتو زده کوي.

ما په دې اړه د ځینو لیکوالانو کتابونه ولوستل، د هغو هم چي د (ی) د ځای او ډول په اړه په خپلو کي سخت اختلاف لري، خو هیڅ یوه ئې د کومي قاعدې یادونه نه وه کړې. دا په داسي حال کي چي هره ژبه ځانګړي قواعد لري، الله تعالی انسان داسي پیدا کړی چي د خپل زړه خبرې په الفاظو سره بیان کړي، الفاظ د قاعدې مطابق جوړ کړي، او د الفاظو لپاره حروف وضعه کړي، د ژبپوهني د بحث یوه اساسي موضوع دا ده چي دا قواعد په ګوته کړي او له دې لاري د ژبي زده کول او لیکل آسانه کړي.

که په پښتو کي د (ی) د کاروني په اړه لږ دقت وکړو راته جوته کېږي چي د (ی) غږ او ډول د هغه توري په حرکت پوري تړلی دئ چي تر (ی) مخکي راځي، که دا حرف زور ولري، د (ی) تلفظ یو ډول وي، که زېر ولري بل ډول، که ساکن وي یو ډول او که زېرکی ولري بل ډول، د همدې لپاره موږ دې ته اړ شوي یو چي د دغو بېلا بېلو

تلفظونو لپاره د (ی) بېل بېل ډولونه جوړ کړو.

په عربي کي د اوږده (ې) مثالونه لږ دي، د قرآن په یوه آیت کي ئې هم بېلګه راغلې، د هود د سورې په ۴۱ آیت کي د [illegible] لفظ راغلی؛ [illegible]

[illegible]

تر (ی) مخکي توری (ر) او تر (ر) لاندي یوه وړه داېره کښل شوې او دا دائره ښیي چي دلته د (ر) پر سر زور نه بلکي زورکی دئ، او د همدې په وجه باید د (ي) تلفظ د پښتو د اوږده (ې) په څېر وي.

اردو او فارسي هم د مجهولي يې غږ لري، په اردو کي دا(ے) ورته راوړي او په فارسي کي خاص توری ورته نه دئ غوره شوی. په (می شود) کي د (ی) غږ د مجهولي يې غږ دی او په رفتی کي د معروفي (ي) خو په فارسي کي دواړه په یوه (ی) لیکل کېږي.

## د (و) شکلونه

په دې وروستیو کي ځینو لیکوالانو دا لانجه هم راولاړه کړې چي وايي د پښتو (واو) یو نه بلکي درې دي (اوږد، لنډ او بېواکه)!! او دا یقیناً چي یوه غلطه انګېرنه ده، پښتو یوازي یو واو لري، اوږد او

لنډ ئې ویل د هغه توري په حرکت پوري مربوط دی چي تر واو مخکي راځي؛ لکه لُور او لور، په لومړي کي لام پېش لري او واو ساکن دئ، او په دوهم کي پیش په واو اړول شوی، د لور اصلي لیکنه (لُرْ) ده چي د لام د پېش په ځای واو لیکو. د لور او لور تر منځ فرق په واو پوري نه دئ تړلی د (ل) په حرکت پوري تړلی دئ، که لام ته پېش ورکړو نو لُور (د رېبلو آله) ترې جوړېږي، او که پېش په واو واړوو لور (ښځینه اولاد) ترې جوړېږي، سُور او سور، په لومړي کي سین پېش لري او واو ساکن دئ، او په دوهم کي د پېش په ځای واو راغلی، اصلي بڼه ئې سُرْ د پُر په څېر ده، سُور د فارسي دور ته ورته او د فارسي دُر د سور په شان دئ. دا غلطي ده چي دُرخانۍ او آدم خان د دورخانۍ او ادم خان په بڼه ولیکل شي.

انګلیسي هم درې (ی) لري: E,I,Y او A هم ډېر ځله د يې په توګه کاروي، همدارازد واو لپاره څلور توري O,U,W,V، دوی ته هم دغو تورو ستونزي راولاړي کړې، څوک چي دا ژبه نوې زده کوي نو په لیکلو کي تر هغه په وار وار غلطېږي چي د هري کلمې ترکیب حافظې ته وسپاري. او همدا د یوې ژبي د لیکدود عیب دئ، ښه لیکدود هغه دئ چي لیکونکی ئې له دغي ستونزي سره مخامخ نشي.

## د علايمو په اړه وړانديز

د علايمو په اړه زما وړانديز دا دئ چي لږ تر لږه د پښتو د سم ليکلو لپاره د زده کړي په پيل کي دا علايم زده کوونکو ته وروښيو، تر څو پوه شي چي چېري کومه يې وليکي. دا ضروري نه ګڼم چي اوس او د يې ګانو له ترويج نه وروسته له يوې پرته نوري ټولي حذف کړو، البته د لکۍ والي يې په اړه مي وړانديز دا دئ چي د دې حذفول غوره دي، پر ځای ئې همزه واله (ئ) کارولی شو، د دواړو غږ ورته دئ، دا به له يوې خوا د يې ګانو شمېر راکم کړي او له بلي خوا به دا ستونزه حل کړي چي کله لکۍ واله (ۍ) د لفظ په منځ کي راځي نو نه پوهېږو چي په کومي (ی) سره ئې وليکو، د مثال په توګه (نړۍ وال) څنګه وليکو؟ دا د پښتو ليکدود يوه بله لانجه ده، ځيني ئې په اوږدې (ې) بدلوي چي دا اشتباه ده، اوږده يې د (ۍ) غږ نه ورکوي، نړۍ وال د نړېوال په توګه ليکل غيرمعياري او ناسمه ليکنه ده، د نړيوال په توګه ئې ليکل هغه مهال صحيح ګڼل کېدی شو چي د پښتو (يې) يوه وی، دا دواړه يې (ې) (ي) د (ۍ) غږ نشي افاده کولی، دې (ۍ) ته نږدې او ورته غږ د همزه والي (ئ) دئ، د (کوئ او نړۍ)، (شړۍاو شړئ) په لفظونو کي دواړه يې ورته غږ لري، که غواړو چي ليکنه مو غږ په دقيقه توګه تمثيل کړی شي؛ نو پکار ده چي يا ئې بېل بېل (نړۍ وال)

وليکو او که ئې ګډ ليکو نو د نړئوال په توګه ئې وليکو، که موږ علايم درلودی؛ دا لانجه هم مخې ته نه راتله، (ړ) ته د يوه زېرکي په ورکولو سره به مو نړيوال د نړۍ وال په توګه تلفظ کاوو. چا چې دا لکۍ واله (ۍ) رايج کړې پښتو ليکدود ئې لانجمن کړی، کاش اوس ليکوالان په دې توافق وکړي چې دا (ۍ) په بشپړه توګه له منځه يوسي او په ځای ئې (ئ) وکاروي.

## عربي حروف حذفول

ځينې ناپوه او متعصب کسان هڅه کوي چې له پښتو نه د (آ، ث، ص، ط،ظ، ع، ف، ق، ء،) حروف وباسي، دا نه يوازي ناسم کار دئ بلکي له پښتو سره لويه جفا ده، په دې حروفو سره پښتو غني شوې او په حذفولو سره ئې له سختو ستونزو سره مخامخ کېږي، موږ د عربي بې شمېره لغات خپل کړي، ځينې ئې دومره عام شوي چې د پښتو اړوند لغات متروک شوي او ځای ئې دوی نيولی، صبر، طرف، ثواب، عالم، آدم، ظلم، يتيم، زکات، خيرات، قلم، فرق، .... ئې بيلګې دي، دوی دې ته پام نه کوي چې آخوا، آسمان، آخرت، آخوند، آرام... په داسي غږ پيل کېږي چې آ ئې افاده کولی شي، نه يوازي الف دا غږ په دقيقه توګه افاده کولی شي او نه ها.

د فارسي ژبي يوه ستونزه دا ده چې (ټ) او (ډ) نه لري، دې ته

اړه ده چې دا تشه ډکه کړي، هغه دخيل کلمات سم نه شي ادا کولی چې د دې حروفو اړوند غږونه په کې وي. انګليسي هم د ځينو غږونو لپاره توري نلري، خو دا ستونزه ئې په دې سره حل کړې چې دغو غږونو ته ئې جوړه حروف رامنځته کړي، لکه د (غ) لپاره gh د (خ) لپاره kh د (ژ) لپاره jh دا سمه نده چې موږ هغه حروف حذف کړو چې د پښتو د کلماتو د سمي افادې لپاره ضروري دي.

## د پښتو الف يو دئ که درې؟

د پښتو ځيني ادعائي خدمتګارانو د الف په اړه هم يوه ستونزه راولاړه کړې او موږ ئې له دې پوښتني سره مخامخ کړي يو چې پښتو څو الفونه لري؟ يو که درې ؟ آيا زور، زورکی او مد د الف په نامه يادولی او د الف پر ځای کارولی شو؟ آيا له مد او همزه نه پرته د پښتو توري بشپړ ګڼلی شو؟ نه يوازي د پښتو او فارسي حروف له عربي اخيستل شوي، بلکي د فارسي کلماتو نږدې اويا اتيا په سلو کي عربي دي، او پښتو هم دې ته ورته، موږ همزه او مد ته همدومره ضرورت لرو لکه الف ته، آدم، آسمان، آلو، آس له مد نه پرته ليکل غلط دي، همداراز دعاء، اعتناء، علماء، او دې ته ورته کلمې له همزه پرته ليکل غلطي ده، متأسفانه ځيني خلک دا اشتباه کوي چې پښتو ليکدود ته داسي بڼه ورکړي چې د زور، زېر او پېش ځای الف، يې او

واو ونيسي، همزه او مد حذف کړي، د ف او ق په ځای پ او ک وکارول شي، که د دوی رایه ومنل شي بیا خو به پیسته د پسته په ځای او پاسته د پَسته په ځای لیکو، بیا خو به ناچار په هري کلمې کي ګڼ شمېر الف، يې او واو اضافه کوو، قلم به کالام، صبر به سابار، فراه به پاراه لیکو. دا خلک نه پوهېږي چي د يوې کلمې د توريو تر منځ د ارتباط د ښرنګوالي بيانولو لپاره دغو علايمو ته سخت ضرورت دئ، د عربي کمال په دې کي دئ چي دا علايم لري، د همدې لپاره هغه کلمات چي له ورته تورو څخه جوړ شوي په تلفظ کي ئې له هيڅ ستونزي سره نه مخامخ کېږي،او لوستونکی پرې پوه کوي چي څنګه ئې يو ځای يا بېل بېل تلفظ کړي. خو موږ په دې اړه ستونزي لرو. دا دوستان دې ته متوجه نه دي چي د پښتو يوه ستونزه دا ده چې د توريو د حرکاتو لپاره علايم نه لري، او دا هغه څه دي چي عربي ته ئې پر نورو ژبو امتياز ورکړی، دغه ستونزه د دې باعث شوې چي موږ ګڼ شمېر ياګاني جوړي کړو، او همدا ياګاني موږ له کړاوونو سره مخامخ کړي، په داسي حال کي چي زموږ څنګ ته فارسي او عربي يوازي يوه يې لري، که موږ هم علايم درلودی نو يوه يې راته کافي وه، زموږ يې هم په اصل کي يوه ده، بېل بېل تلفظ ئې په اصل کي تر يې مخکي توري له حرکت سره ارتباط لري، او دا دئ اوس خو ځيني راپيدا شوي او غواړي واو او الف هم د يوه په ځای درې او څلور

کړي!! او دې غیرمعیاري او ناسم کار ته ژبي ته د خدمت نوم ورکوي!! ژبي ته خدمت دا دئ چي آسانه کړی شي، د کلماتو ترکیب ئې د قواعدو مطابق کړی شي، لیک او تلفظ سره ورته شي، اضافي توري ونه کارول شي، د بېلو بېلو قومونو لهجې او بېل بېل لیکدودونه ئې توحید شي.

## عربي الفاظ

نه له پښتو نه د عربي الفاظو د حذفولو هڅه وکړو او نه ئې په غلطه توګه پښتو ته د رااړولو، په کار ده چي عربي لغات په خپل اصلي شکل کې ولیکو، غصه، معنی، صحیح، صلح، خفه، قبر،.... په دې بڼې ونه لیکو: غوسه، مانا، سئي، سوله، خپه، کبر، ... خو مشهور غلط لکه هدیره او لوز چې په اصل کي حضیره او لفظ دي عجالتاً په خپل حال پرېږدو او ورو ورو ئې تصحیح کړو....

## متروک الفاظ

له دې ډېره وکړو چې متروک الفاظ بیا راژوندي کړو او د دخیل معروفو لغاتو په ځای ئې وکاروو، او دا پښتو ژبي ته د خدمت په نامه یاد کړو. لکه چوپړ د خدمت په ځای راوړل، خدمت په پښتو کي دومره عام استعمال لري چي تر چوپړ خلک پرې ډېر ښه پوهېږي.

که ئې نه منئ نو له خدائي خدمتګارانو پوښتنه وکړئ.

## له بلي ژبي ژباړه

تر څو چي پښتو په يوې واقعي ملي ژبي بدلېږي او هر نوي شي ته د خپلې ژبي په قالب کي نوی نوم غوره کوي، بايد له عربي ژبي مرسته وغواړو، که ژباړي ته اړ کېږو نو دا ژباړه مو له عربي وي نه له کومي بلي ژبي، تر اردو، فارسي، انګليسي او ډېرو نورو ژبو پښتو ډېره غني ژبه ده، د مثال په توګه د پروسې لپاره عمليه، د پلان لپاره منصوبه، د کواليټي لپاره کيفيت، د لست لپاره فهرست، د راپور لپاره اطلاع يا خبر... له هري ژبي کلمې په کلمې ژباړه غلطي ده، مخصوصاً له فارسي نه پښتو ته، حقيقت دا دئ چي په فارسي کي ډېر بې ځايه او بې خونده تکلف شوي، د ادبي او عاميانه ژبي ترمنځ ئې ژور توپير شته، که څوک د فارسي عاميانه ژبه له تصرف او تغير نه پرته وليکي او له ادبي ليکني سره ئې مقايسه کړي ورته معلومېږي چي څومره تغير پکي راغلی، د مثال په توګه: مه ميرُم- من می روم، ما ميريم - ما می رويم، بيا بريم- بيا برويم، کار کديم – کار کرديم، او هلته چي عربي کلمات کاروي نو عجيب څه ترې جوړ کړي؛ د بيلګي په توګه: قرار بود، به سقوط مواجه سازد، به ابلاغ فرمان مقام معظم رهبری همت ګماشت، زمام اداره کشور در اختيار معظم له

قرار گرفت، فرمان صادر فرمود... او له انگريزي play roal په رول یا نقش بازی کرد، مقلد ژباړونکي هڅه کوي دغه ټول الفاظ له ټول بې ځایه، عبث او مسخره تکلف سره کلمه په کلمه وژباړي او لیکي: قرار و، له سقوط سره مواجه کړ، د رهبرۍ د معظم مقام د فرمان د ابلاغ لپاره ئې همت وگماره، د هېواد د اداري زمام د معظم له په اختیار کي قرار ونیوه، فرمان ئې صادر وفرمایه، رول ولوبوي...

ځیني لیکوالان د فارسي هغه اصطلاحات په بشپړه توگه په پښتو ژباړي چي ډېر بې ځایه تکلف په کي شوی، هلته عربي الفاظ په ناسمه توگه او له تکلف سره کارول شوي او دا لیکوالان له هغوی تقلید کوي او همدا کار په پښتو کي کوي، لکه دا چي په فارسي کي وايي در آن جا وجود داشت، دوی د وجود عربي کلمه پور کړې او له تکلف سره ئې کارولې، دا ئې تر دې ادبي گڼلې چي ولیکي: در آن جا بود، زموږ لیکوالان له دوی تقلید کوي او لیکي: هلته ئې شتون درلود!! گمان کوي چي دا به تر دې ډېر ادبي وي چي ولیکي: هلته وو. یا دا چي په فارسي کي لیکي، در اختیار او قرار گرفت، د دې په ځای چي ولیکي: به دستش افتاد، زموږ لیکوالان ئې داسي راژباړي: په اختیار کي ئې قرار ونیولو!! د دې په ځای چي ولیکي: په لاس ورغی، یا په واک کي ئې شو، په لیکني کي بې ځایه تکلف لیکنه عیبناکه کوي، د بلاغت غوښتنه دا ده چي اضافي توري او کلمات ونه کارول

شي.

ځيني ژباړونکي د فارسي دا ترکيب: موجود است يا وجود دارد، داسي ژباړي: شتون لري، خو هم دا فارسي ترکيب بې خونده او بې ځايه تکلف دئ او هم ئې پښتو ژباړه، پښتو ژباړونکو ته مي مشوره دا ده چي له تکلف نه ځان لري وساتئ، سادګي خپله کړئ، په مختصرو الفاظو اکتفاء کوئ، او که کله دې ته اړ کېدئ چي له فارسي نه څه پښتو ته وژباړئ نو لومړئ فارسي جمله له تکلف نه وباسئ بيا ئې وژباړئ، داسي مه کوئ چي په فارسي که وګورئ چي چا ليکلي: تشريف فرما شد، حضور بهم رساند، قدم رنجه کرد، به خوانش ګرفت، او دې ته ورته نور کرکجن او له بې خونده تکلف نه ډک ترکيبونه، نو تاسو هم متې راونغاړئ او په پښتو کي ئې د ژباړلو هڅه وکړئ، دا نه ژبي ته خدمت دئ او نه د يوه پوه، حکيم او اديب ليکوال کار، په فارسي کي دا کار درباري ليکوالانو کړی، هغه مقلد ليکوالان ترې تقليد کوي چي د ويلو لپاره څه نه لري، غواړي خپل بې محتوی مطالب د رنګينو الفاظو په جامه کي ونغاړي او له ناپوهو اورېدونکو او لوستونکو نه شاباش ترلاسه کړي.

## مجهوله يې:

په مشرقي ليکدود کي مجهوله يې ډېره او بې ځايه کارول

کېږي، د مثال په توګه چې، کي، مي، دي، داسي، هسي،... داسي ليکي: چې، کې، مې، دې، داسې، هسې... حال دا چي په کار ده (دي، کي، چي، مي، داسي، هسي... صحيح وګڼو او (دې، کې، چې، مې، نې، بې، زې، تې، داسې، هسې) د دغو ترکيبونو مخفف ومنو (دي ئې، که ئې، چي ئې، مي ئې، نه ئې، به ئې، زه ئې، ته ئې، داسي ئې، هسي ئې) ، مثالونه ئې:

کتاب دې ورکړ؟ يعنی د ده خپل کتاب دي ورکړ؟ او کتاب دي ورکړ؟ يعنی کوم کتاب دي ورکړ؟ کتاب دي ئې ورکړ غلط او د ټولو پښتنو قبيلو د مروج تلفظ خلاف دئ.

الله تعالی دې شهادت قبول کړي، يعنی الله تعالی دي د ده شهادت قبول کړي. دا سمه نه ده چي وليکو: الله تعالی دي ئې (يا دې ئې) شهادت قبول کړي، د پښتنو هيڅ قبيله داسې نه وايي، نه پوهېږو دا د چا کوږ بدعت دئ؟

کتاب مې ورکړ، يعنی د ده خپل کتاب مي ورکړ، او کتاب مي ورکړ، يعنی يو کتاب مي ورکړ.

کې ځواب ورکړی نه وی، يعنی که ئې ځواب ورکړی نه وی.

دا کتاب چې ليکلو، يعنی دا کتاب چي ئې ليکلو.

نې خبر کړ له خطره، يعنی نه ئې له خطره خبر کړ.

چي دښمن بې خپل هېواد کي نه پرېښود: يعنی دښمن به ئې په خپل

هېواد کې نه پر ېښود.

زې لامنم، يعنى زه ئې لامنم.

تې لازغمې، يعنى ته ئې لازغمې؟

داسې ځواب کړه چي بيا رانه شي، يعني داسي ئې ځواب کړه ....

هسې خبر کړ، يعني هسي ئې خبر کړ.

په پښتونخوا کي د مجهولي (ې) لپاره يوه نوې يې راايستل شوې چي له اردو ئې اخيستې ده، داسي ئې ليکي: (ے)، اردو ژبه هم د پښتو مجهولي يې ته ورته غږ لري چي همدا (ے) ورته راوړي. لکه کيلئے .

## ښځينه جمع

ځيني ادعا کوي چي د ښځينه نومونو جمع بايد په اوږده يې سره وليکو، خو دا خبره صحيح او معياري نده او د پښتنو د ټولو قبيلو له عام تلفظ سره مغايرت لري، صحيح او معياري خبره دا ده چي هغه ښځينه نومونه چي په پای کي ئې هې وي په جمع کي همدا هې په يې بدلېږي، خو دا يې کله اوږده او کله لنډه تلفظ کېږي، که تر هې مخکي توری زورکی ولري، په جمع کي دا زورکی په زېر بدلېږي او د هې په ځای څرګنده (ي) راځي، لکه ښځه ښځي، کونډه کونډي، ژبه ژبي، او که تر هې مخکی توری زور ولري زور ئې په زورکي بدلېږي

او د هې په ځای اوږده (ې) راځي؛ لکه څپه څپې، ړنده ړندې، خوږه خوږې، شپه شپې.

د ښځینه جمع لپاره دا قاعده قبوله کړو چي: ښځه، کونډه، لنډه، تنده، مرسته، بېله، بله، پېښه (حادثه)، او دې ته ورته ښځینه مفرد په ښځي، کونډي، لنډي، تندي، مرستي، بېلي، پېښي او ټول هغه ښځینه نومونه چي تر يې مخکي توری ئې زېر ولري په (ي) سره ئې جمعه کړو او مېنه، لنده، اوږده، پېښه (تقلید)، څپه او دې ته ورته صيغې په منې، لندې، اوږدې، پېښې، څپې او ټولي هغه صيغې چي تر يې مخکی توری ئې زېر کی ولري په (ې) سره جمع کړو.

اغلباً دا (ې) ډېره او بې ځایه استعمالېږي، په هغو ځایونو کي هم کارول کېږي چي د پښتنو د هیڅ قبیلې په تلفظ کي نه احساس کېږي او په ډېرو مواردو کې نه یوازي له تلفظ سره اړخ نه لگوي بلکي د التباس باعث گرځي، د مثال په توگه: د جمع لپاره هم او د ندا لپاره هم ښځې لیکل، چې له یوې خوا له عام تلفظ سره مغایرت لري او له بلي خوا مخاطب په اشتباه کې اچوي، باید (ښځي د ښځه جمع او ښځې د اې ښځې په معنی) ولیکو، په دواړو صورتونو کي ئې د ښځې په توگه لیکل د التباس باعث گرځي. یا (ورځې) د ورځ جمع او له مخاطب نه د تلو په اړه پوښتنه (ته ورځې؟) سم ئې ورځي (د ورځ جمع) او ورځې د پوښتني لپاره.

## د ئې او يې توپير

ئې او يې بايد تفکيک کړو، لکه دا: کتاب ئې ولوست، ته ښه ليکوال يې. دواړه په يوه ډول ليکل صحيح نه دي.

## له، په، نه

(له، په، نه) کېدی شي له وروستۍ کلمې سره يو ځای وليکل شي او (هـ) ئې حذف شي، لکه:

لپاره، لخوا، لدوی، لده.

پکي، پدې، پدوی

نشته، نشو، نشي، ندئ،

په نورو ژبو کې هم داسي حذف ګورو، لکه په دري کي: نه می رود - نمی رود، نه نوشت- ننوشت، نه کرد - نکرد، به من - بمن،

## دی او دئ

(دی) د (ده) لپاره، او (دئ) د ده د حالت بيانولو لپاره، لکه: دی ښه ليکوال دئ.

## (و) او (ؤ)

د (و) او (ؤ) په ځای د (وو) لیکل، دی په سنګر کي وو. یوازي (و) او (ؤ) مطلوب غږ نه افاده کوي.

## (وه) او (وو)

په ماضي صیغو کي د مذکر او مؤنث تر منځ تفکیک او دواړه یو ډول نه لیکل، داسي چي حامد یوه خور درلوده او محمود یو ورور درلودو، همداراز د ساته په ځای ساتو، د لیکه په ځای لیکو، د (کاوه) په ځای کاوو، او ... ساته او لیکه او دوی ته ورته صیغې د مؤنث او امر لپاره مختص کړو، ته خط لیکه، ته لار ساته... یوه لار ساتله بل سنګر ساتلو، یوه لار ساته او بل سنګر ساتو، د پښتنو هیڅ قبیله نه وایي: بل سنګر ساته، یا محمود زوی درلوده. که د ولس عامه لهجه او تلفظ اعتبار لري نو دا صحیح نه ده چي ولیکو: احمد ښه پوهېده، باید ولیکو احمد ښه پوهېدو، او ملالۍ ښه پوهېده. احمد کار کاوو، احمد مړی خوړه، دا صحیح نده چي ولیکو: احمد کار کاوه.

## په او پر

(په) د ظرف لپاره او (پر) د استعلاء لپاره کارول، مثالونه ئې، په

کتاب کي، پر بام، په ۱۳۸۶ کال کي، خو استثناءات باید ومنو، لکه: د دې په ځای، په مېز باندي، په خدای قسم، دا ځکه چي ډېری پښتانه په داسي مواردو کي د (پر) په ځای (په) کاروي.

پر او باندي یو ځای کارول غلطي ده: لکه کتاب پر مېز باندي پروت دئ، صحیح ئې دا ده: کتاب پر مېز پروت دئ.ورباندي او درباندي هم د (پر) او (پرې) په ځای راتلی شي لکه: پور ورباندي لري، اعتماد درباندي لرم،

## باندي

د باندي صیغه ډېره بې ځایه او غلطه استعمالېږي، او غلطه لیکل کېږي، لکه: په دې خاطر باندي، په دې اساس باندي، په دې هکله باندي، زما په نظر باندي، په دې اړه باندي.... چي دلته باندي ته هیڅ ضرورت نشته، په دې خاطر، په دې اساس، په دې هکله، په دې اړه، زما په نظر کافي او صحیح دي، زما په نظر او زما له نظره ئې صحیح صورتونه دي. د باندي، لاندي، وړاندي .... صحیح لیکنه همدا ده، د لاندې، باندې، وړاندې .... په توګه ئې لیکل غیرمعیاري دي او د پښتنو هیڅ قبیله ئې په مجهوله نه تلفظ کوي.

## د ځ او ز ستونزه

د (ځ) او (ز) ستونزه باید حل کړو، ستونزه، استازی، زلمی، ختیز، لوېدیز... صحیح وګڼو، خو هلته چې د بلي ژبي (ج) پښتو ته رااړوو نو د ضرورت په صورت کي ئې په (ځ) بدل کړو، لکه جواب: ځواب، جای: ځای، جور: ځور، ...

## سته او شته

سته د شته، نسته د نشته... په ځای کارول ومنو، ځکه دا د پښتنو د اکثریت ژبه ده، له مشرقي پرته نور ټول پښتانه همدا الفاظ کاروي، او دا د دري (است) او (نیست) ته ورته دي، د پښتو او دري بې شمېره لغات ګډ اساس لري،

## نه او ښخه

د (نه) په ځای یوازي (هـ) راوړل: له کنره تر هراته، له مزاره تر پکتیا، او له میمنې تر پکتیکا او له فراه تر پامیره(په هـ او الف پای ته رسېدلي کلمات په وروستیو دوو بڼو کي)، دا نور پرېږدو چي لیکي: له فراه ښخه تر پامیر پوري، له خدای ښخه غواړم، یا له خدای نه غواړم، که دلته د (خدای) له نومه وروسته لږ توقف وشي نو معنی ئې

دا راوځي چي له خدايه ئې نه غواړم. نږدې ټول پښتانه داسي وايي: له خدايه غواړم.

د (ورځخه) او (ورنه) په ځای (ترې) راوړل، د (ما ورځخه وپوښتل)، يا (ما ورنه وپوښتل) په ځای ما ترې وپوښتل.

## موږ او مونږ

مونږ او (موږ) دواړه مجبوراً صحيح ومنو خو ورو ورو ئې موږ ته راواړو، ځکه په دې سره به زموږ ليکنه د ډېرې پښتنو له تلفظ سره ورته شي، د جنوب او غرب پښتانه دا لفظ داسي نه تلفظ کوي چي (ن) هم په کي راشي، لږ پښتانه ئې داسي تلفظ کوي چي د (ن) خفيف غږ هم په کي راځي.

## فعل کوم نوم او ضمير ته ورته راوړو

دا قاعده قبوله کړو چي له مخې ئې ليکي: سړی له خپلي مېرمني سره راغی، او مېرمن له خپل مېړه سره راغله، د راغلل په ځای، دا هم صحيح ومنو چي کتابونه او کتابچې ئې راوړل (د راوړې په ځای)، کتابچې او کتابونه ئې راوړل. ښځې او نارينه راغلل، نارينه او ښځې راغلل(د راغلې په ځای)، که څه هم نږدې ټول پښتانه فعل د وروستي

ضمیر په ښه اړوي او وايي: نارینه او ښځې راغلې، کتابونه او کتابچې ئې راوړې، کتابچې او کتابونه ئې راوړل. ښځې او نارینه راغلل.

## جمله په فعل پای ته رسول

د جملې په پای کي له فعل نه وروسته (دئ، ده او ...) لیکل ضروري ونه ګڼو: لکه دا چي ښه کتاب ئې لیکلی دئ، استادان راغلي دي، ډېره مبارزه ئې کړې ده، دا کافي او صحیح وشمېرو چې: ښه کتاب ئې لیکلی، استادان راغلي، ډېره مبارزه ئې کړې.

## د (ز)، (ج) او (ژ) په اړه اختلاف

د (ز)، (ج) او (ژ) اختلافي کارول ورو ورو توحید کړو، د ننګرهار ځیني قومونه وايي: ژوندی، ژبه، ژمی، روژه... د کنړ او پېښور پښتانه ئې جوندی، جبه، جمی، روجه ... کړي، د جنوب او جنوب غرب، او د پښتنو ډېری قومونه ئې زوندی، زبه، زمی، روزه ... تلفظ کوي، دا او دې ته ورته کلمات له دري سره هم ګډ بنسټ لري، هغوی زنده، زبان، زمستان، روزه کړي، له دې نه معلومېږي چي اصل (ز) ده، د ځینو عواملو په وجه (ژ) او (ج) ته اوښتې.

## د (ښ) او (ک) مخکي وروسته کول

د (ښ) او (ک) مخکي وروسته کول هم یوه ستونزه ده، کله چي دا دوه توري یو د بل څنګ ته راشي، نو د مشرقي خلک یا (ښ) له (ک) نه مخکي کړي او یا ئې حذف کړي، دا ځکه چي دوی (ښ) په داسي توګه تلفظ کوي چي له (ک) نه وروسته تلفظ ئې ورته ګران دی، نور پښتانه کښته، کُښلی ... وایي خو دوی ئې ښکته او ښکلی کړي، نور وایي: کښېنه، کښېږده، ... دوی وایي کېنه، کېږده، د جنوب غرب پښتانه (کښي) وایي، په کور کښي دئ، خو د مشرقي پښتانه ښ حذفوي او وایي په کور کي دئ، (ډېری پښتانه په دې خاص مورد کي له مشرقي والو سره همغږي دي او کي وایي او دا ځکه چي تر کښي آسانه دئ)، دې ته مو هم باید پام وي چي د دري نشستن له کښېنستل سره ګډ بنسټ لري، ک ئې د دې لپاره حذف کړی چي دري ژبي نه شي کولی کلمه په ساکن حرف پیل کړي، یا به ئې حذفوي او یا به متحرک حرف ورباندي اضافه کوي، د انګلیسي stop د استاپ په بڼه تلفظ کوي، او د پښتو له لمر نه ئې مهر جوړ کړی، او له کښېنستل نه نشستن، دا ښیي چي اصل کښېنستل دئ نه کېنستل، د (ښ) ګران تلفظ د دې سبب شوی چي په دغو کلماتو کي تغییر راشي. د همدې لپاره ګورو چي ځیني پښتانه قومونه (کښ) په

(چ) بدلوي او وايي: چېنه، چېږده،

بخښنه او بښنه هم د دې ستونزي یوه بله بېلګه ده، دا د فارسي له بخش سره ګډ بنسټ لري، لکه وبخښه او ببخش، مشرقي وال د دې لپاره خې حذفوي چي ښ هم د خې په څېر تلفظ کوي، دا دوه ورته غږونه څنګ په څنګ ویل ګران دي نو ځکه ئې خې حذف کړې.

## د (د) او (له) ستونزه

ځیني پښتانه (د) د (له) په ځای کاروي چي دا یوه غلطي ده، صحیح ئې دا ده چي: دی د کابل دئ، دی له کابله راغلی، صحیح نه ده چي ووایو: دی د کابله راغلی دئ، په دري کي د دغو دواړو لپاره (از) راځي، (او از کابل است)، (او از کابل آمده)، هغه خلک چي د دري تر اغېز لاندي دي دا دواړه یو د بل په ځای راوړي.

## د (ف) او (پ) لانجه

پښتانه د (ف) په ویلو کي مشکل لري، د همدې لپاره غواړي هغه په (پ) واړوي، مخصوصاً کله چي د بلي ژبي الفاظ پښتو ته رااړوي، د مثال په توګه د عربي له فوج نه پوځ او د انګریزي له فابریکې نه پابریکه جوړوي، په کار ده چي دا په خپلي اصلي بڼي کي

وليکل شي، فوج يا فوځ او فابريکه.

## د (ق) او (ک) ستونزه

پښتانه د (ق) په ويلو کي هم ستونزه لري، غواړي آسان ئې کړي، او د (ک) بڼه ورکړي، قرار، قوم، قلم، او له عربي نه اخيستل شوي نور کلمات د کرار، کوم، کلم په توگه تلفظ کوي او ځيني بې خبره خو متعصب ليکوالان گمان کوي يا قصداً ښيي چي صحيح بڼه ئې همدا ده، په کار ده چي دا او دې ته ورته ټول دخيل لغتونه په خپلي اصلي بڼي کي تلفظ او وليکل شي. دري ژبي چي ټول دخيل لغاتونه په اصلي بڼي کي قبول کړي، اوس د ادبي دري نږدې اويا په سلو کي عربي لغات جوړوي، هلته هم ځيني متعصبي کړی هڅه کوي چي عربي لغات له دري وباسي، که څه هم دا کار ناشونی دئ، خو که له دري نه عربي ووځي نو په يوې نيستمني ژبي به بدله او خپله ټوله اوسنۍ غنا به له لاسه ورکړي. د ايران متعصبو کړيو له اوږدې مودې راهيسې دا هڅه پيل کړې، د عربي او عربو په ضد د دوی او د نورو قومونو هره هڅه چي په مسلمانانو کي قومي او نژادي تعصبات راپاروي د غربي نړی له لوري بدرگه شوې او دوی ئې په شا ټپولي، د ايران معروف شاه پرست شاعر فردوسي خپله شاهنامه داسي وليکله چي هيڅ عربي لفظ په کي رانشي، نن او په ايران کي د شيعي انقلاب

له راتلو وروسته هم دا لړۍ جاري ده، په افغانستان کي هم ځيني متعصبي غربپال او ايران پلوه ډلي همدا کار کوي. غربپال پښتانه ليکوالان هم په دې ګمارل شوي چي همدا کار وکړي.

## (ږ) او (ګ)

هغه پښتانه چي (ږ) د (ګ) په څير تلفظ کوي، له (غ) نه مخکي د (ږ) تلفظ ورته ګران شي، نو ځکه (غ) ترې رامخکي کوي او له (ږغ) نه (غږ) جوړوي، خو نور پښتانه ئې ږغ ګڼي. لږ تر لږه بايد دا صحيح تلفظ هم ومنو.

## (ږ) او (ن)

همدا راز کله چي (ږ) او (ن) سره نږدې راشي نو مشرقي وال همغه معامله ورسره کوي چي له (ک) او (ښ) سره ئې کوي، (ن) له (ږ) رامخکي کړي، دا هم د (ږ) د ګران تلفظ په وجه ده، له ږنور او ږنندي نه نږور او نږندي جوړ کړي. خو نور پښتانه چي (ږ) د (ګ) په څېر نه تلفظ کوي دا مشکل نه لري او په خپلي اصلي بڼه کي ئې تلفظ کوي او ليکي.

## (کامه) او (او)

کامه باید د (او) په ځای او هلته وکارول شي چې د یوې جملې پای او د بلې اړوند جملې پیل په ګوته کړي، نه مکرر (او) لیکل صحیح دي او نه دا چې ولیکو: رپوټونه وایي، چې....، په داسې مواردو کې تر چې نه مخکې د کامې راوړل صحیح نه دئ او د جملې ضروري ارتباط شلوي .

## (لېري) او (لري)

د لېري او لري سمه لیکنه همدا ده، د لېرې او لرې په توګه ئې لیکل غلط او د مروج تلفظ خلاف دي، د لري (بعید) او لري (د لرلو صیغه) تر منځ تفکیک د لام او رې په حرکت سره کېږي، په لومړي کې لام زور او رې زېر لري او په دوهم کې لام زور او رې زورکی لري.

## (ولې) او (ولي)

د ولي (نوم) او ولي (استفسار کلمه) یو رنګ او په همدې توګه لیکل صحیح دي، د ولې په توګه ئې لیکل غیرمعیاري دي، د دواړو ترمنځ تفکیک په یې سره نه بلکه د واو په حرکت سره کېدی شي،

په لومړي کي واو زورکی لري او په دوهم کي زور. هیڅ پښتون د ولي وروستۍ يې د ويالې په څېر نه تلفظ کوي.

## (اوه) او (اووه)

اوه (۷) په همدې توگه ليکل سم او د اووه په توگه ئې ليکل ناسم دي، داسي ليکل ئې د هغه چا اختراع ده چي غواړي د پيش په ځای واو وليکل شي، دا عدد په اصل کي داسي تلفظ کېږي (اُوَه)، الف پېش لري او واو زور.

## (يولس) او (دولس)

يولس او دولس همداسي ليکل سم او د يوولس او دوولس په توگه ئې ليکل ناسم دي، د دواړو عام تلفظ داسي دي: يُولَس، دُولَس؛ په اصل کي (يو او لس) او (دوه او لس) وو چي تخفيف پکي راغلی، د او په ځای لومړي واو ته پيش ورکړی شوی او هې حذف شوې.

## (نه) او (نهه)

نه (۹) په همدې بڼه ليکل صحيح دي نه د نهه په توگه.

## (ای) او (اې)

د ندا لپاره په عربي او دري کي (ای) او په پښتو کي (اې) ویل کېږي، نږدې ټول پښتانه وايي: اې ربه! اې پلاره ! اې زویه! په کار ده چي په لیکني کي هم دا مراعات شي.

## (هغې) او (هغي)

د هغې او هغي سمه کارونه داسي ده: هغي ښځې وویل، هغې وویل، په هغي لاري تلل، په هغې تلل، هغي برخي ته ولاړ، هغې ته ولاړ

## (پسې) او (پسي)

د پسې او پسي توپیر: ورپسې شه، په ده پسي ورشه، پسي ورشه،

## (تاسي) او (تاسې) فرق

تاسې د (تاسي ئې) مخفف دئ لکه دا چي تاسې هم ولولئ (یعني تاسي ئې هم ولولئ)

## (لپاره) او (له پاره)

د دې (لپاره) یا د دې (له پاره) صحیح دي او د دې (د پاره) غلط. اصل ئې پار دئ، د پښتنو ځیني قبیلې ئې د پار په بڼه کاروي، د خاطر په معنی لکه چي وايي: د خدای پار دئ،

## د (نه) بې ځایه کارول

لکه: له ننگرهار نه، له لغمان نه... چېري چي یو لفظ په فتحه او الف پای ته رسېږي د نه راوړل صحیح نه دي لکه: له الله غواړم، له ما وپوښته، له تا پوښتي، په داسي مواردو کي نه راوړل صحیح نه دي، خو که په ساکن توري پای ته رسي نو ښه دا ده چي یوازې هـ پرې علاوه کړو، لکه له کابله، له لغمانه، له کابل نه او له لغمان نه لیکل صحیح نه دي. او له کابل څخه یا له کابل چخه خو لاډېر بې خونده دي. اصل ئې له کابلَ راغلم دي، چي دا زور په هـ بدلوي.

## (اړه) او (اړوند)

دا دواړه هم په غلطه توگه استعمالېږي، اړه د ارتباط په معنی او اړوند د مربوط په معنی دي، د کتاب په اړه ئې معلومات ورکړ، د کتاب اړوند معلومات ئې ورکړ.

## پایله

پایله د نتیجې په معنی راوړل غلطي ده، د پایلي دقیقه ژباړه عاقبت او انجام دئ، داسي لکه له بدو پایلو سره مخامخ شو. په کار ده چي نتیجه، حاصل او ثمره د پایلي په معنی ترجمه نشي.

## (پرې) او (ترې)

دا دواړه د (پر ئې) او تر ئې) مخفف دي، همغسي لکه مې، کې، چې، دې چي د (مي ئې)، (کي ئې)، (چي ئې) او (دي ئې) مخفف دي.

## (مات) او (ماتې)

مات، ماته، ماتي صحیح او ماتې غلطه لیکنه ده. مات شو، ماته شوه، له ماتي سره مخ شو، ماتي او برياوي به وي، صحیح دي.

## (پاته) او (پاتې)

پاته صحیح لیکنه ده، راځه له مورږ سره پاته شه، شا ته پاته شو، ځیني پښتني قبیلې پاتې وايي.

## (خدای) او (لمونځ)

د خداوند او نماز الفاظ له پښتو نه دري ته تللي، اصل ئې لمونځ او خاوند دي، لمونځ او خاوند واضح معنی لري، لمونځ د تجلیل په معنی او خاوند د څښتن په معنی ده چې یو ئې د الله تعالی لپاره غوره معنی لرونکی نوم او بل ئې د لمانځه لپاره مناسب نوم دئ، نماز او خداوند داسي جوړ شوي چي له معنی پرته نومونه دي، دا ځکه چي له بلي ژبي اخیستل شوي، په دري کي خاوند په خداوند اوښتی بیا تخفیف شوی او خدا ترې جوړ شوی او بیا پښتو ته راانتقال شوی او خدای ترې جوړ شوی.

## د لمونځونو اوقات

د لمونځونو اوقات له دري اخیستل شوي او په پښتو کي تغییر په کي راغلی: نماز شام ئې ماښام کړی، (ن) او (ز) ئې ترې حذف کړي، نماز خفتن ئې ماخستن، نماز دیگر ئې مازدیگر، نماز پیشین ئې ماپښین کړي، له (پس شوي) نه ئې پېشلمی جوړ کړی، ښایي د دې مهال اصلي نوم په پښتو کي سېمی وي چي ځیني پښتانه ئې په همدې نامه یادوي، موږ د اوقاتو لپاره ګهیځ، برېزر، غرمه، لمرخاته او لمر ولېده لرو، د ګهیځ په ځای مو د عربي سحر رااخیستی خو هغه هم

ځینو سهار کړی.

## (عکس العمل) او (غبرگون)

په دې وروستیو کې د عکس العمل په ځای د غبرگون د راوړلو شاهد یو، په داسې حال کې چې غبرگون د عکس العمل معنی نه افاده کوي، نه پوهېږو په دې کې کوم مصلحت گوري چې دا جامع اصطلاح په ناقصه توگه بدلوي. غبرگ د یوویستوي په مقابل کې راځي.

## (اند) او (فکر)

په وروستیو څو میاشتو کې د اند کلمه په ځینو کړیو کې دود شوې، د فکر او نظر په ځای ئې کاروي، په داسې حال کې چې دا او دې ته ورته الفاظ هومره عام شوي او هر څوک ئې په معنی پوهېږي چې په ډېر زحمت سره کولی شو بدلي او حذف ئې کړو، د عربي الفاظو په ځای د پښتو متروک الفاظ دودول د هغو کړیو کار دئ چې له عربي سره حساسیت لري، د همدې لپاره گورو چې په استعماري ځواکونو پوري تړلي خبري رسنیو دې کار ته کلکه ملا تړلې، متعصبي څېرې ئې استخدام کړې او دا کار پرې کوي.

## خدای پامان

خدای پامان په اصل کي د خدای په امان کي دئ، تخفیف په کي راغلی، په اوسنۍ بڼي کي صحیح مفهوم نه افاده کوي، که خدای دي مل، خدای دي حافظ، خدای دي ساتونکی، د خدای په امان کي دي وې... وويل شي غوره دئ. او دې ته خدای پامانی ویلی شو.

## لرغونې ژبه

ځیني متعصب او ناپوه لیکوالان، هغه چي ډېری ئې له بهر نه گمارل شوي، دا هڅه کوي چي د افغانانو ترمنځ اختلافات راولاړ کړي، یو ئې ادعا کوي چې پښتو اصیله ژبه ده او لرغونی تاریخ لري او بل ئې وايي دري او فارسي اصیله ژبه ده او اوږد تاریخ لري، دا جنابان دې ته متوجه نه دي چي د پښتو او دري په سلو کي تر اتیا زیات لغاتونه گډ بنسټ لري، که د الفاظو په اړه ئې دقیقه څېړنه وکړي ورته معلومه به شي چي دا دواړه ژبي څو پېړۍ مخکي یوه ژبه وه، د خاصو عواملو په وجه سره بېلي شوې، دا کړۍ د یوې ژبي تسلط د هغې د ښه والي دلیل گڼي، حال دا چي د ژبي د تسلط عوامل نور دي، هغه ژبه مسلطه شوې چي په سیاسي لحاظ مسلطه شوې، که نن انگرېزي د نړۍ مسلطه ژبه ده وجه ئې دا نه ده چي دا ژبه تر

نورو ښه والی لري، یا لرغونی تاریخ، وجه ئې د هغه قوم سیاسي سلطه ده چي انګریزي وایي، زه په ډېر ډاډ او جرأت سره ویلی شم چي انګرېزي د نړۍ تر ډېرو ژبو ناقصه، وروسته پاتې او له ادبي لحاظه ستونزمنه ژبه ده. په افغانستان کي د پښتو ژبي د عدم ودي او فارسي د تسلط عوامل نور دي، چي زه ئې څېړل مفید نه ګڼم.

دغو کړیو ته وایم راشي وګورئ چي د پښتو او فارسي لغات څومره سره ورته او نږدې دي:

د انسان د غړو نومونه:

| پښتو | فارسي |
|---|---|
| سر | سر |
| پزه یا پوزه | پوز |
| زنې | زنخ |
| زبه یا ژبه | زبان |
| ورون | ران |
| لاس | دست (ل) په (د) بدل شوی |
| پښه | پا (ښ) حذف شوی |
| زنګون | زانو |
| غوږ | ګوش غ په ګ او ږ په ش بدل شوي |

| غاړه | گردن غ په گ ړ په ر او ه په دن بدل شوي |
|---|---|
| غوښه | گوشت |
| گوته | انگشت |
| نوک | ناخن او نوک |

خپلوان

| پلار | پدر لا په د بدل شوي |
|---|---|
| ورور | برادر |
| خور | خواهر |
| مور | مادر |
| لېور | ییور |
| ماما | ماما |
| نیکونه | نیاکان |
| زېږېدلی | زائیده |

شمېرې

| یو | یک |
|---|---|
| دوه | دو |
| درې | سه |
| څلور | چهار |

| پنځه | پنج |
|---|---|
| شپږ | شش |
| اوه | هفت |
| اته | هشت |
| نه | نو |
| لس | ده |
| یولس | یازده |
| دولس | دوازده |
| دیارلس | سیزده |
| څورلس | چهارده |
| پنځه لس | پانزده |
| شپاړس | شانزده |
| اوه لس | هفده |
| اته لس | هژده |
| نولس | نوزده |
| سل | صد |
| زر | هزار |

اشیاء

| آسمان | آسمان |
|---|---|

| زمکه | زمین |
|---|---|
| لمر | مهر |
| میاشت سپوږمۍ | ماه |
| باران | باران |
| اوبه | آب |
| ونه | بن واو په ب بدل شوی |
| بوټی | بوته |
| شګه | ریگ |
| غر | هیر (کوه) |
| درياب (سیند) | دریا |
| کور (انگور) | انگور |
| غنم | گندم (غ) په گ بدل شوی |
| جوار | جواري |
| مار | مار |
| آس | اسپ |
| خر | خر |
| غوا | گاو غ په گ بدل شوی |
| وز او وزه | بز |
| پشۍ، پشکه | پشک |

| مرغه | مرغ |
|---|---|
| طوطي | طوطی |
| بلبله | بلبل |
| ځنګل | جنگل |
| نوی | نو |

رنګونه

| تور | تار (سیاه و تاریک) |
|---|---|
| سور | سرخ |
| سپین | سفید |
| زېړ یا ژېړ | زرد |
| نصواري | نصواري |

افعال

| لیدل | دیدن ل په د بدل شوی، تل همداسي شوي |
|---|---|
| خوړل | خوردن |
| وخوره | بخور و په ب بدل شوی، تل همداسي شوي |
| کړل | کردن |
| کرل | کاریدن کشت کردن |

| ربېل | درویدن |
|---|---|
| وړل | بردن |
| شړېدل | شاریدن |
| تگ | تک و دو |
| آزمېښت | آزمایش |
| ورېدل | باریدن |

نومونه

| خاوند | خداوند |
|---|---|
| ستر | سترگ |
| گرم | گرم |
| سوړ | سرد |
| نرم | نرم |
| سخت | سخت |
| شرم | شرم |
| تبه | تب |
| شپه | شب |
| ورځ | روز |
| غرمه | گرمي |
| لمن | دامن |

| ځای | جای |
| --- | --- |
| مږه | موش |

دې ته باید متوجه وو چې کله ځینې لغتونه له پښتو نه فارسي ته اوړي نو د پښتو لغت ځینې توري لکه ل، غ، ځ، و، ږ په دري کې په د، گ، ج، ب، ش بدل شوي، لکه:

لمن - دامن، لیدنه- دیدن، پلار- پدر، لاس- دست...

غوږ -گوش، غوښه -گوشت، غرمه - گرمي

ځای -جای، پنځه- پنج،

شپږ - شش، مږه - موش،

ونه - بن، وخوره - بخور،

د دې الفاظو شمېر ډېر زیات دئ، دومره چې په دې کې چا ته د شک ځای نه پرېږدي چې پښتو او دري څو پېړۍ مخکې یوه ژبه وه او ورو ورو سره بېلې شوې.

څو ورځې مخکې مې د یوه متعصب لیکوال مرکه اورېده چې ویل ئې فارسي د پښتو په پرتله اوږد تاریخ لري او گواکې پښتانه لیکوالان له فارسي نه ژباړه کوي. دا د بیمار ذهن او زړه او کوږ فکر او قلم خاوند په دې نه پوهېږي چې پښتو او فارسي څو پېړۍ مخکې یوه ژبه وه، ورو ورو سره بېلې شوې، ډېر ناپوه او کمعقله انسان به داسې انگېري چې فارسي تر پښتو زوړ تاریخ لري، څوک چې په دې

پوهېږي چي انسانان له یوه مور پلار پیدا شوي، نژاد ئې یو او د یوې ستري کورنۍ غړي دي، هغه په دې پوهېږي چي د ژبو بنسټ هم یو دئ، مختلفي ژبي داسي دي لکه د یوې ستري وني لويي او وړې څانگي، هر څومره چي له وړو څانگو نه د سترو څانگو په لوري ځو بېلي څانگي گډ بنسټ پیدا کوي، نه یوه څانگه پر بلې غوره والی لري او نه زوړ تاریخ.

## پښتو او کمپیوټر

پښتو نوې کمپیوټر ته لار موندلې، د هغو افغانانو دا هڅه د ډېر قدر وړ ده چي دا کار ئې کړی، خو ډېر کار لا پاته دئ، د پښتو لپاره ښکلي حروف جوړول یو له دغو کارونو څخه دئ، هم د متن لپاره او هم د عنوان لپاره، موجود حروف ځیني ستونزي لري، ځیني ئې د یو شمېر ضروري حروفو د نشتوالي له مخي ناقص دي، آ، ؤ، أ، إ، گ، ... نه لري، ځیني ئې داسي دي چي د (د، ډ، ر،ز، و او نورو حروفو موقعیت په دقیقه توگه نه دئ ټاکل شوی، په لیکه برابر نه وي، ښکته او پورته وي، په کرور حرف کي داسي دي: (د و ډ ذ رد ز و) په ځینو کي یو شمېر علایم لکه . ، : ! " په واضح توگه نه معلومېږي له ضروري اندازې واړه جوړ شوي، په کرور حرف کي داسي دي: . ، : ! " دا په داسي حال کي چي کرور حرف تر ټولو شته حروفو ښه دئ، زه

دي ته اړه شوم چي له عربي او فارسي نه ځيني تر ټولو ښکلي حروف غوره او پښتو ته ئې واړوم، د پښتو کرور حرف کي مي هم لاسوهنه وکړه او ځيني ستونزي مې رفعه کړې، د دغو حروفو نومونه دا دي:

Pashto best font
Pashto best font hashiah
Pashto anwan font
Pashto anwan font outline
Pashto arabic styl font
Pashto Kror modified
pashto Jadeed inwan
Pashto yasmeen font
Pashto yasmeen bold
Pashto jihon modified

موجود پښتو حروف له عربي حروفو اقتباس شوي، د پښتو خپل دوديز خط ډېر ښکلی دئ، په کار ده دغه حروف کمپيوټر ته انتقال شي. زه هڅه کوم چي د پښتو خپل حروف جوړ او کمپيوټر ته ئې انتقال کړم.

سبحان ربي العظيم

# فهرست

